# منګولې

د لغمان د ولسي شاعر سید باوجان لومړۍ شعري ټولګه




راټولونه او سریزه
د
لال پاچا "ازمون"




# منګولي

د لغمان د ولسي شاعر سيد باوو (بابو) جان

## شعري ټولګه




راټولونه او سریزه

د

لال پاچا ازمون

۱۳۷۷ لمریز

ل




## کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | منګولې |
| وېناوال | : | سيد باوو جان |
| خپرندوی | : | دانش کتابپلور خپ. دکي نعلبندي. قصه خواني پېښور |
| د چاپ کال | : | ۱۳۷۷ ل ۱۹۹۸ ز |
| د چاپ شمېر | : | ۵۰۰ ټوکه |
| ليکګر | : | صديق الله بدر |

# ډالۍ

د پښتو ژبې د ځوان هڅاند او
نوښتګر ليکوال محمد اسمعيل يون
درانه نامه ته چې د خپلې تاندې
ځوانۍ ډېرې خوږې شيبې يې
د پښتو ادب ښېرازۍ ته لوګې
کړې او لا هم د خپل ژوند سوکالي
له پښتو سره په لېونۍ مينه کې
ويني. خدای ﷻ دې ژوند ورکړي.

دعاګوی

ازمون

بسم الله الرحمن الرحيم

له ګران ملګري او فرهنګپال ورور اسد الله ساپي څخه ګروونه ګروونه مننه چې په دې لاس تنګو شیبو کې یې د دې کتاب خپروای ته مټې را بډ وهلې.

**ازمون.**

# سید باوو جان

# او د هغه د فن انګازې

## پېلامه:

پښتو اولسي شعر د پښتو ادبیاتو یو ستر توکی دی، په اولس کې زوکړی دی، خوله په خوله خور شوی او زړونو ته یې لار کښلې. پښتو ولسي شعر د خپل ځانګړې موسیقیت او وزن له مخې کلونه ځان ژوندی ساتلی. وینا وال یې له زده کړې څخه بې برخې دي. خو د خپل - ځانګړي استعداد په پلوشو کې یې د خپل فکر څرګندونې د ولس په ژبه را نغښتې او د شعر انګازې یې په خپل زوکړې ټاټوبي او په نورو - سر دروکې په ژبه خورې کړې. د ولسي شعر ښېګڼې کولای شو په څو جزونو کې جوتې کړو. یو څو دا چې دغه شعر زموږ ژبنۍ ذخیره ده، په دې کې یو شمیر اصطلاحات، متلونه او ار ویینونه خوندي دي، د دې تر څنګه یو شمیر تاریخي، مذهبي کیسې او مسایل پکې نغښتي او همدا رنګه زموږ د فولکلور غوره برخه ده چې په هغه کې زموږ د دودونه او یو شمیر نور اجتماعي خبرې کښل شوې دي. د دغه شعر ژبه د ولس ژبه ده، د ولس د ارمانونو او هیلو ژباړه ده، په دې کې یو شمیر عشقي، دیني، تاریخي او اجتماعي مسایل په خلاص متن او طبعي بڼه

لومړی

ځای په ځای شوي دي .

د بیلګې په ډول که د بیدار د «ننګرهار» په نامه چاربیته را واخلو او ویې څیړو نو به وینو چې د ننګرهار د ښاو خوا جغرافیوي ښکلې انځور ترڅنګ یې د هغه ځای د خلکو دودونه هم انځور کړي دي :

ای پاکه ننګرهاره    راپاتې یې له پلاره

قربان دې شم وطنه    ته لایق د ډیر صفت یې

زمــونږ پــه حــق جنت یې

ترپایه .

یا همدا ډول نور ولسي فورمونه که ترڅیړنې لاندې ونیول شي نو په ښکې به تربیتي ، تاریخي او سیاسي مسایل ووینو . د دې ترڅنګ زمونږ ولسي شاعر د ولس د ژوند نورو خواوو ته هم پام اړولی ، کله هم چې په ولس کې کوم ساري مرض خور شوی نو زمونږ ولسي شاعر هغه په ډیرو ښو الفاظو کې داسې په ترتیب او ډلې چې د خپل تاریخ په پلو شوکې یې د ټل لپاره د هغه اغیز ښودلی دی . د دې ترڅنګ د یو شمیر غزاګانو تاریخي چاربیتې ، بدلې او لوبې په ډیره ښه ژبه کښل شوي دي . ۱

که کله هم په ولس باندې کوم ناتار راغلی نو ولسي شاعر هغه ته موزونه جامه وراغوستې ، د هغه په مقابل کې یې د خلکو قیام انځور کړی دی زمونږ پرګران هیواد خرته یرغلګر سرې سترګې راغلي خو بیا له داسې ماتې سره مخ شوي چې د تاریخ په پاڼو او د دې ترڅنګه یې په ولسي شاعرکه کې یې هم انځور وینو . په شفاهي ادبیاتو کې له پرنګي سره زمونږ د ولس جهاد



aa

د سره روس د زروي وسلو په مقابل کې د ولسونو تش لاسي جهاد هغه ستر
څيرکې دی چې زموږ په ادبياتو کې بيا په تيره په کړنى ادبياتو کې يې انځور ترهر څه
د مخه زموږ د ولسي شاعر فکر د ولس فکر دی ، په ولس کې زوکړې دی او
همدا وجه ده چې د دغو ناتارونو په مقابل کې يې هم هرڅه په ډاګه کښل ، تر
دې چې خلک يې قيام ته رابلل که څوا دانا ره د ولس په ژبه ټوکيده چې :

په سور غربيل راته نن اور دی
وګړی جوړ راته پيسغور دی
پر کلي کور باندې مغل راغی
هم پر غزني هم پر کابل راغی

نو پرون مو هم د همدې لارې مله پيدا شول ، او د اناره يې پوره
کړه :
راپاڅيږئ غازيانو
د شوروي نه کافران راغلي دينه

يا د هغو غازيانو د تورو انځور کاږي چې د تاريخ باب جوړوي .

غزني کې ټولو توره وکړه
خو د واغز له جبهې ګرده ورده شمه

په لنډول ... ويلي شو چې ولسي شعر په خپل ځانګړي موسقيت او ځانګړي
وزن کې خورا ډير تاريخي ، اجتماعي ، مذهبي او عشقي اړخونه ځای کړي دي .
د لومړي ځل لپاره زموږ فولکلوريکې کيسې لکه : آدم خان درخانۍ ، مومن خان
او شرينۍ او ... په ولسي شعر کې کښل شوې دي . زموږ د نني شعر
پيلامه هم ولسي شعر دی . هغه مه چې زموږ په ولسي شعر کې زموږ

دريم

ژبه ، زموږ تاریخ او زموږ فرهنګ غځیدلی ، هغه مره یې بیا د نوي شعرلپاره لاره هم اواره کړې ده.

د دنیا شهکارونه زیاتره په ولس کې زیږي ، هغومره چې زموږ د ولسي شعر او ادبیاتو انځورونه غښتلي او ښکلي دي فکرکوم چې د لیکني ادب لپاره به یې هم هومره لاره اواره کړې وي .

که لنډۍ ، سروکې ، بیولالې ، بدلې او ... تر څیړنې لاندې ونیول شي نو په دوی کې به موږ ډیر لوړ انځورونه چې د نړۍ شهکارونه شمیرل کیږي پیدا کړو . زموږ ولسي ادبیات تر بل هرڅه ډیر غني دي . زموږ په ولسي ادبیاتو کې انځورونه داسې د ښکلا او ذوق پر کرښه کې کیني چې که نړیوالو ته وکښل شي ، نو ګومان کوم چې زموږ ولسي ادبیات به د ډیرو خلکو په زړونو کې ځانګړی ځای ونیسي .

په ګودر سور سالو ښکاره شو

ماوې په تورو اوبو اور ولګیده

یا دا سروکی :

شاه وزیر یاره

خوست کې ګرمي ده ماته کیده چنارونه .

همدا ډول نورې ډیرې نمونې هم وینو ، نو په پایله کې دا خبرې واټولو او وایو چې زموږ ولسي ادبیات زموږ د تاریخ ، دود او کلتور یو انځوریز تفسیر دی .

په ولسي شاعرانو ندې خپل چاپیر چل هم ځانګړی اغیز ښندي ، تل

خلورم

ac

د هغه تر اغیز لاندې وي . نو زموږ د ولسي شاعرانو یو ټاټوبی هم لغمان دی
لغمان هغه شاعرانه سیمه ده چې تر اوسه پورې یې په خپله غېږ کې لوی ځایه
شاعران روزلي دي . لکه درواخلی محمد نور ، شیخ احمد خان ، حنان –
الینګاري او زموږ د دې ټولګې شاعر سید باوو جان ، د دغو اولسي شاعر-
-انو ډېرې نغمې د موسیقۍ په پردو کې خوله په خوله تر دې دمه را-
رسېدلي دي . یو څه یې په کتابو کې ثبت شوي دي . خو د دغو شعرونو ډېره
برخه د مرګي په منګلو کې ښکېل شوېده . د دغې ټولګې د شاعر هم یو شمېر
شعرونه زموږ لاس ته راغلل خو داسې ښکاري چې ده ښایسته ډېره ولسي
شاعري کړېده . خو زیاتې برخې یې یو پناه شوېدي .

د سید باوو جان د شاعرۍ بلوشې لا تراوسه په لغمان ، ننګرهار
او د پښتنو په یو شمېر نورو فرهنګي سیمو کې د خلکو په ژبو نوکې ژوندۍ
دي . نو موږ به لومړۍ د ده پر ژوند بیا د ده پر فن لنډه رڼا واچوو .

## ژوند :

سید باوو جان د سید اشرف زوی د سید سعدالدین لمسی دی .
نوموړی د خپل ژوند ځلور ځلوېښت کاله په خپله په یوه شعر
کې داسې ښودلي .

ورشه فقیر سید باوو جانه    د عمر شمېر واخله له مانه
په تا تېر شوي دي ځلور ځلوېښت کلونه

د ولسي شاعرانو د مرګ او ژوند ټاکلې نېټه په ګوته کول ګرانه
خبره ده خو بیا هم د هغوی د مرګ او ژوند نېټه د هغوی
د هم مهالو او کلیوالو له خولې ثبت شوې نو د سید باوو جان

پنځم

د ننوی ( سید عبداللطیف ) له خولې د ده پلار تر پنځوس کلنۍ
پورې د ژوند شېبې تېرې کړې او په ۱۳۲۲ لمریز په کنډ
کې مړ او همدلته د څېهل دختران په هدیره کې خښ دی . نو
د ننوکړې بنسټ په ۱۳۷۲ لمریز اټکل کېدی شي .
سید باورجان د لغمان ولایت د کلاچې په یوه روحاني
کورنۍ کې پیدا شوی او لوی شوی دی سید باورجان د خپل
ژوند په بهیر کې د کورنۍ له هېڅ ډول اقتصادي ستونزو
سره لاس او ګرېوان نه و . نو د همدې شتو له برکته
دی او وخت د مروجو علومو ( فقه ، تفسیر ، منطق )
په زده کړې لاس پورې کړ . د دې سره سره یې د پښتو
او فارسي منظوم اثار هم ولوستل .
نوموړی د علم زده کړې په رڼا کې د وخت په
حکومت کې د مامورۍ دنده هم ترسره کړې . د ماموریت
دندې یې په کابل ، میدان ، او کنډ کې د عمر تر وروستي
سلګې ترسره کړې دي . د ده د ماموریت وروستی
دوره په کنډ کې وه . چې بالاخره همدلته و مړاو
خښ شو . نوموړی په پښتو او فارسي شعر کې
لاس برې و خو پښتو شاعري یې ډېره کړې ده
سید باورجان د نورو ولسي شاعرانو په څېر
د موسیقۍ په برخه کې خپله شاعرانه طبعه
ازمیلې . د ده ډېر شعرونه د لغمان او
کنډ د ولسي سندرغاړو په خولو کې ژوندي
دي .

ae شېرزم

# شاعري:

د سید باور جان شعرونه هم د نورو شاعرانو په شان د موسیقۍ په پېرزوکې تر دې دمه پوره ژوندي پاتې دي. د ده شاعري هم د موسیقۍ په پېرزوکې زوکړې ده.

د سید باور جان د شعر انګازې لا تر دې دمه د خلکو په زړونو کې - غځوني کوي. د ده شاعري او موسیقي یو له بله نه بېلېدونکي ارخونه دي. د ده شاعري په ملي وزنونو کې ثبت ده، که څه هم د ده شاعري په یو نیم ځای په لیکلې بڼه کې وزني نیمګړتیا ولري خو د ده شاعري او په مجموع کې ټوله اولسي شاعري د خپله ځانګړو وزنونو او نورو ځانګړنو له مخې د استونزو په ترنم کې له منځه وړي.

همدا ډول د ده په شاعرۍ کې ډېر داسې ځایونه بر ترسترګو شي چې هلته ویونه په بشپړه بڼه نه شي ویل کېدای او د هغه ولې بڼه په ویناکې بدلوي خو بیا هم له دې سره - سره د ده او د نورې ولسي شاعرۍ مضمون، آهنګ او - وزن یو ډول خوږلني رامنځته کوي. د ده په شاعرۍ کې بیا هم ولس څپې وهي د هغوی ارمانونه او د هغوی غوښتنې په دغو څپو کې رانغښتل کېږي. همدا هغه ده چې د ده د شاعرۍ اغېز لا تراوسه په زړونو کې غځوني کوي، ژوندۍ ساتل شوې او د ډېر محفلونو، حجرو او ډیرو مشال ګرځېدلې. څرنګه چې ولسي شاعري مقفا ده نو د سید باور جان شعرونه به هم د نورو ولسي شاعرانو په شان ډېر ځایونه قافیوي نیمګړتیاوې لري. خو د نا زده کړو

اووم

لپاره داعیبونه عیب نه ګڼل کیږي او دا د ولسي شاعرۍ د پېژندنې یوه ستره

ځانګړنه هم ده چې په طبعي ډول د قافیې بندیزونه او د وییونو د لیکلې بڼې د

لوستلو قوانین ماتوي ، ځکه د دغې شاعرۍ ژبه د محاورې ژبه ده . په

ځینو ځایونو کې یوه کلمه یا لنډوي اویا یې د قافیې او نورو ضرورتونو لپاره

اوږدوي .

د دې ترڅنګه په شاعرۍ کې یې ځینې داسې نمونې کېدای شي هم پیدا شي چې

د لویو شاعرانو سره په فی البدیهه مشاعره کې ویل شوي وي او یا یې په پله

کښل شوي وي . لکه د ده د یو هم مهال «محمد نور» د یو شعر په پله

لرغعنر سره په مشاعره کې کښلې :

زړه مې هلاک شو هردم راته ژاړي ... محمد نور

تېر شو هوس په عبث را نه لاړې ... سید باووجان

همدا ډول نورې ډېرې بېلګې هم وینو ، له دې سره سره یو شمېر ژبنه تېروتنې

، د ناوینو او سنځینه نوپېر نه کول ، هم وینو خو څرنګه چې د ده د شاوخوا ژبه دا

توپیر نه کوي ، نو دی هم د خپل شعر د نه بندښت لپاره په همدې ژبه شاعري

کوي او خپله لهجه هم ساتي لکه دې واخلې :

توري زلفې توري وروځې تورې شپې نه توري دي

غم دې په ما زوري دي

یا : په ژبني اړخ کې :

سروه ستا له قده شرمسار دي .

# منځپانګه «محتوا»

سید باو جان هم د خپلو نورو ولسي شاعرانو او په تیره له هم مهالو شمره اوزه په اوږه د شاعرۍ ډګر په خپلو عشقي، مذهبي، تاریخي، کلتوري، اجتماعي او ... اړخونو ګرم ساتلی. د ده زیاتره شعرونه عشقي، مذهبي او اجتماعي رنګ لري. د ده د شاعرۍ هنري اړخونه هم د خپل چاپیریال زیږنده دي او په ډول ځانګړي خوږلني په کې نغښتي. دی په خپلو شعرونو کې د ولس غوښتنې رانغاړي همدا رنګه د ولس په ژبه له ولس سره د پرمختګ، پوهې، پر ډوی د نورو ناروا او جهل پر توکو غږیږي. د ده شاعري طبیعي او بې تکلفه ده، په خلاص متن او اصنګینه ژبه غږیږي:

تل دې د درمغو بیل په لاس ګرځي بدا نو سره

ولې ظالمه اخرت کوټي دې وراني کړلي ... تر پایه.

د ځینو مذهبي کیسو له اړخونو به رابزاده یو شمیر نورې کیسې هم منظومې کړي لکه د رواخلی د چنګکی داستان چې په ډیره ښکلي بڼه یې له نورو حیواناتو سره د ده ژوند عکاسي کړې ده:

| | |
|---|---|
| د چنګکې په ځنګله کې و مکان | ډیر پېچي ورته ورکړي و سبحان |
| چنګنی ډیر خوشالیده په خپل کیو | شکر شکر خدای پرما شو مهربان ...تر پایه. |

په ولسي شاعرۍ کې ځینې طنز برخې هم د څېړنې او یادونې وړ دي. همدا ډول د ده په شاعرۍ کې هم د ځینو نورو اړخونو ترڅنګه یو شمیر طنزي خواوې هم په یو ځانګړې موسیقیت او وزن کې انځور شوې دي لکه:

د چای کوم صفت، په ښه مینه محبت

مجلس کې ښه ښکاریږي د چاینکو شرو پرنګ

زیړ ګل په شانې رنګ ... ترپایه.

د ده په شاعرۍ کې لکه د نورو ولسي شاعرانو په شان هم د سوال ځواب برخه ډیره غني ده. خو د دې ترڅنګه یو شمیر داسې شعرونه هم لري چې د یو ښه تسلسل په لړکې یې د خپل پاك زړه ارمان او افسوس په ډیره ښکلې هنري بڼه ځای کړیدی، لکه د رواخلئ د خپل بخت نه د شکایت دا انځورونه چې د خپل حال پولوړا ځرګندی،

بخته زه دې ولې وو بیستم له یاده
ولې ته مې خبر نه شوی له فریاده
بخته زه خو په تا ډیر ډیر نازیدلم
خبر نه وم چې ته ډک یې له فساده
بختورو ته چې ګورم هوسیږم
زه بدبخته شومه پاتې نامراده
بخته زه سید بارو جان دې بې بنیاد کړم
خدای نه غواړم چې ته هم شې بې بنیاده

*

یا د دغې غزلې ساده ګې، رنګیني خوږه د یو پاك زړه له تله زیږیدلې ده:

هغه څوك چې مې له عشق منع منع کوینه
نه پوهیږم چې عشق څه نقصان لرینه

لسه

چې بې عشقه مړي هغه سړی مردار دی

بسم الله پرې روا نه ده له یقینه ... ترپایه.

داچې د ده شاعري په ټول ولس کې خوره ده یو علت یې هم دادی چې ده د ولس په ژبه او د ولس په سطحه شاعري کړې او هم یې د ولس له غوښتنو سره سم دیر شمیر مذهبي کیسې په نظم کښلې ، د ده د شاعرۍ انګازې په ډیرو ځایونو کې خورې دي.

پښتو او فارسي ګډه شاعري یې هم کړې چې دا یوه نمونه خویې اوس ډیره مشهوره ده :

الهی من نمی دانم

به علم خود تو میداني ... ترپایه.

د ده د شاعرۍ زیاته برخه په دیني او مذهبي رنګ رنګېدلې.

## جوله «شکل»

د ده د شاعرۍ د منځپانګې ډیره برخه په ملي وزنونو (مقام) څاربیته ، لوبه ، ټپه او داستان کې رانغښتې ، د ده شاعري یو ډول ځانګړی اهنګ او موسیقیت لري . لکه څرنګه چې ویپوهو ، اند او لوړې خواوې یې نوې دي داسې یې د وینا توند هم له نورو سره جوت توپیرلري . د ده شاعري هم د نورو ولسي شاعرانو په شان له نورو (عروضي) خواو څخه یې اغیزې پاتې شوې ، د ده شاعري په پښتني ولسي وزن او آهنګ کې ، ځای شوې .

ځینې وخت د یوې کلیمې په زیاتوالي سره شعر ته یو ډول ځانګړی خوند ورښېي.

یو ولسم

# دا ټولګه :

مالۀ ۱۳۶۷ لمریز کال را پدېخوا د پښتو د ولسي ادبیاتو په راټولولو پیل کړی ، نو کله به چې په یوه نیمه سبا دېره کې له مجلسیانو سره مخ شوو له مجلسه به وروسته مې له هغه څخه د ولسي شاعرانو شعرونه کښل ، په دې ډله کې یو هم د دې ټولګې سید باورجان دی . د ده ډېر شعرونه مې د ولسي سندرغاړو ( ګلکی ، پاینده ، ملاګی ، خانګل ، اشرف ) له خولو څخه کښلي دي . څرنګه چې د دغو شاعرانو شعرونه ورځ په ورځ کمېږي ، نو هغه څه چې زما له واکه بهر نه وو را ټول کړه ، بیا مې دا شعرونه د لغمان د د دې یو مشهور او وتلی شاعر محترم عاشق الله فریاد ته ورکړل چې د هغه له نظره یو ځل تېر شي ، هغه په ډېر ورین تندی دا شعرونه واخستل ، ډېر شعرونه چې بشپړ نه و بشپړ یې کړل او ځینې چې د ولسي شاعرانو له خولو څخه غلط ثبت شوي وو جوړ کړل .

څرنګه چې د ولسي شاعر د بشپړې شاعرۍ ټولګه پیدا کول ستونزمنه ده نو په دې خبره زه یقین لرم چې سید باورجان به ډېره شاعري کړې وي ، خو ما تر خپله وسه د هغه د شعرونو دا بیلګې لاس ته راوړې . کیدای شي چې د دغه کتاب له خپراوي وروسته نور فولکلور ټولونکي د ده د شاعرۍ پاتې برخه راټوله او همدا رنګه هغه شعرونه چې په دې ټولګه کې څه نیمګړتیاوې ولري ، پوره او بشپړ کړي .

په درنښت

لال پاچا آزمون

جلال کوټ - ۱۳۷۵

دولسم

# نعت

زه په تا يمه شيدا رسول الله
سپين رخسار کړه رونما رسول الله

داسې نه ده چې زه اوس په تا مين يم
مين شوی يم پخوا رسول الله

لږ نظر د محبت را با ندې وکړه
غرق او ډوب يم په ګناه رسول الله

زه فقير سيد باوو جان ورځ په محشر کې
پرې مې نه ږدې يک تنها رسول الله

نه مې وشو خپل دلبر ته ملاقات
نه مې وکړې ځو خبرې اختلات (۱)

په افسوس افسوس دلبر ځنې جدا شوم
ورېه واخلي دا زما عبث اوقات

د دلبر مینه به هیڅکله هیر نه کړم
ځو چې زه یم په دنیا باندې حیات

هغه درنګ چې محبوبا زما یادیږي
زړه مې جوش کاندي په شان دسماوات (۲)

نه رحیم یې رحم وکړه په رحمانه
پروت یم زه سید باوو جان په سکرات

...........................

(۲) سماوات - سماوار
(۱) اختلات - اختلاط

ته خاص محبوب د خدای یې محمده ﷺ
هم خاتم د انبیایې محمده ﷺ

مبارك نوم دې ډېر خوږ په ما لګیږي
ته مراد مقصود زمایې محمده ﷺ

په قران کې په طاها[1] یا سین[2] یادیږې
مصطفیٰ د انبیایې محمده

ستا څلور واړو یارانو نه قربان شم
د حسن حسین بابایې محمده ﷺ

زه فقیر سید باوو جان په ټله غم خوړم
ته زموږ غمخور پیشوایې محمده ﷺ

---

(۱) طاها = طه
(۲) یاسین = یٰس

هغه څوک چې مې له عشق منه د منع کوینه
نپوهیږم چې عشق څه نقصان لـــري یــنــه

چې بې عشقه بنده ګان دي هغه څوک دي
خدای خبر دي چې ایمان به په کې وینــــه

چې بې عشقه مري هغه سړي مــردار دي
بسم الله پرې روانه ده له یقیـــنـــه

ما د عشق په دروازه کې ینبی لاس دے
که مې خدای تر هغه ځای ور ســـوینه

د زړه سوخت به يې هغه کس ته معلوم وي
چې د عشق به کنه ولې کې او به څښنینــه

وارخطا نشي فقیر ســید باورجــا نــه
هغه خدای چې څه کـــوي هــغــه به شینــه

هغه څوک چې نه لري علم و ادب

په دې پوه شه چې وي ځانته په غضب

بې ادب سړی چې ووځي له کوره

وخپل خرڅ ته به حیران وي روز و شب

نه بې علم وي چې کلي کې امام شي

نه عالم دی چې دې جوړ کاندې مکتب

خدای بېشکه د هر چا روزي رسان دی

مګر ما لره ښکاریږي ډیر عجب

بې ادب نه وي د خدای ځانته ورنه کړي

چې بیا یې خلک نه دي په پلار باندې لقب

علم ښه شی دی فقیر سید باوو جانه

په محشر پوښتنه نشته د نسب

چې د عرش د پاسه ئې ښې پښې قدم دے
بل څوک نه دی محمد ﷺ نبي اکرم دے

په خاطر د ده ظاهره يې خپل خدائي کړه
پاک الله ورباندې کړی خپل کرم دے

که هر څو يې کړم صفت خو نه خلاصيږي
په صفت باندې يې ستړی نور قلم دے

د ده نور نه يې پيدا پيغمبران کړه
رب ولې چې سردار د کل عالم دے

بابا ادم ګوره بابا د کل عالم دے
پاک نبي د بابا ادم نه مقدم دے

چې داسې لوی پيشوا شفاعت کاندے
ای فقير سيد باوو جانه څه دې غم دے

چې جهان مې په کار نه شي جهان څه کړم
چې تنها نړینه روان یم یاران څه کړم

په دوستۍ دوستۍ لحد کې مې پرېباسي
زه په داسې بې وفا عزیزان څه کړم

دا دنیا زما په پوزه کې پیزوان ده
چې مې پوزه رانه وړي دا پیزوان څه کړم

د اجل په لاس زخمي سید باوو جان یم
که صورت مې تول سندان شي سندان څه کړم

نه پوهیږم په کیفیت           د مفلسانو
چې دی خړ نګه قسمت           د مفلسانو

*

زه یې وینم د مفلسو نیت لــوړ دی
چیرته نه نشته دی عزت           د مفلسانو

*

که جهان د دولتمن وي وایي نه نشــته
خوري مالونه په حکمت           د مفلســانو

*

عقیده مه کړه فقیــر سید باړوجانه
بیا به وګورې شوکت           د مفلســانو

هغه څوک چې اختیار نه لري د ځان
د بل چاپه مړي څه کوي ګریان

مړی که ژوندی کېږي په فریاد
بې فایدې به ولې څېرې کړي ګریوان

له نادان سره سودا ده که پوهېږې
ته د ځان ژړا کوه تل په سوران

د مړه پوی شه چې پیدا شوي پناه کېږي
ته دې خپله کله پاتې یې په جهان

خود ورور په مړي یو افسوس ضرور دی
هسې نه چې شو کوې ځان په نښو کان

دا ژړا نه ده د مړي په ځان غم دی
څوک دې نه ژاړي په ماسید باووجان

بخته زه دې ولې وویستم له یاده
ولې ته مې خبر نه شوې لـه فریاده

بخته زه خو په تا ډېر ډېر نازېدلم
خبر نه وم چې ته ډک وې له فســاده

بختوره ته چې ګورم هــوسېږم
زه بدبخته شومه پاتې نامـــراده

بخته زه سید باوجان دې بې بنیاد کړم
خدای نه غواړم چې ته هم شې بې بنیاده

---

مفلسي په دنیا غم نه دی نو څـه دے
په مفلس سړي مــاتم نه دی نو څـه دے
ما ونه لیده ځوانسي د مفلســانو
خو د ښځې څښتن کم نه دی نو څـه دے
توبه وباسه فقیر سید باوجـانه
مفلسي د سر سرسم نه دی نو څـه دے

# غزل

ما ویل دا دلبر یواځې یار زما دے
چې مې فکر ورته کړ دهر چا دے

مګر سم په لاره هیڅ سړے نه ځي
له اوله پیدا شوی بې وفا دے

د دوه ورځو یاري هر چا سره کاندے
په دې یمه ورځ خپل یار ځنې جدا دی

یوسف به واخلي پورته یې تر اسمان کړے
بیا یې ویښم له اسمانه را خطا دی

دا دنیا ده دا یې کار سید بابو جانه
ترقي او تنزل سره پیدا دے

د چېنګۍ په ځنګله کې و مکان ― ډېر بچي وړه ترې وکړې وو سبحان

چېنۍ ډېر خوشالیده په خپل بچیو ― شکر شکر خدای پر ما شو مهربانه

دی به ووته صحرا ته زما وروړه ― د غنم په سرکې کیناست یک امان

دی په خپل کلا نکاریه بانډې مغرور و ― فیل چې راغی د ده ځالې یې کړه وران

چېنۍ ویل زما او فیل سره د ښمنۍ شوه ― څوېې لوی کمره کې نه کړم او یېزان

د چېنګۍ او غومبسې اشنا لیسې وه ― هم چونګښه وه د چېنګۍ په فرمان

دې د ډېوا ړو سره وکړه مصلحت ― پس له هغه نه غومبسه شوه روان

په کوم وخت کې چې غومبسه سپې لاړه ― فیل ته ګوړې ګرځیده په بیابان

چې د ابل ځل یې ټک واهه په سترګو ― فیل یې ړوند کړ په ځای کیناسته حیران

د چونګښې غږ چې فیل واوریده ورغه ― یوناڅاپه فیل ویالې ته شو روان

فیل ویل دې ویالو کې به اوبه وي ― یوناڅاپه له کمره شو اوېزان

له کمره ځنې خطا شو فیل مردار شو ― د چېنګۍ له زړه وخوته په ارمان

چېنګۍ ویلې پسې وړشۍ اې نامرډانو ― د فیل ډېرې غوښې وخوړې په بیابان

چې دې زور په چا برنه وې لاس مکره [1] ― د غه پند واوره زما سید باووجان

---

(۱): د دې کیسې بله مقطع داسې ده:

بس که بس که ای ملا عبدالحنانه

د چېنګۍ او د فیل وو دا داستان

نوره تهوله کیسه همدغه ده په بیتونو کې یې فرق لشته.

یوه ورځ لیلا له کوره وه وتلې
د واړه سترګې یې په مجنون ولګیدلې
لیلا یوه شوه چې راغلی خوار مجنون دی
په خندا سره یې مجنون ته وویلې

لیلا وېلې زه دې جار شمه مجنونه
تا سختې خوارې په ځان ده راوستلې
که خبر وای لیونی مجنون راځینه
فرش د مځکې به مې زلفې غوړولې

مجنون وېلې لیونی نه یم په حال یم
د استا غم سودایي کړی یم بلبلې
نوم مې قیس دی شهزاده زوی د پاچا یم
چې د تا په څنګ کې ناست یم نازولې

موږ یې وېلې لیلا چا سره غږیږې
دا خبرې تا د چا سره کولې

لیلا غلې مجنون لاړ شید باو وجانه
د غم اوښې یې په مخ باندې راتللې

معشوق د حقاني زموږ نبي خیرالبشر دی
په دین باندې محکم شه چې روږي دې شي ایمان

* * *

معشوق د حقاني زموږ پاک نبي سرور دی
شفیع المذنبین شو د نبیانو څخه دار دے
سردار العلمین دی پیدا شوی اولین
خاتم المرسلین دی ظاهر شو اخرین
که دی نه وه پیدا نه وه پیدا لوح وقلم
نه عرش و نه کرسي وه نه پیدا بابا آدم
نه ځمکه نه اسمان نه ملایک نه دا دنیا
بې مثله لا شریکه یک تنها دی پاک مولا
ښکاره یې خپل قدرت کړ چې پیدا شو دده نور
دا واړه مخلوقات دده له نوره شو ظهور
چې پیدا څلور ملک شوو اسرافیل او جبرائیل
ښکاره شول څلور واړه عزرائیل او میکائیل
دا ځمکه اسمانونه شول پیدا ملایکان
یو لک څلور ویشت زره زیات وکم پیغمبران

حضرت بابا آدم نه شو پیدا د غه زوات
اولاد د بابا آدم لره مون وایو آدم ذات
پیدا شوه د ده نور نه څلور واړه کتابونه
تورات، انجیل، زبور، فرقان ته وکړه حسابونه
تورات شو په موسیٰ انجیل په بر خه د عیسیٰ شو
زبور شو په داود قران ذمونږ په مصطفیٰ شو
په واړو مخلوقاتو مشرف شو بني آدم
ویلی پاك الله چي مکرم دی بني آدم
په دې کې شبه نشته چي ویلی پاك اکبر دی
محبوب د حقاني زمونږ نبي خیرالبشر دی
ولقد خلقنا بني ادمه راوړی په قران
په دین باندې محکم شه چي روڼ دې شي ایمان

* * *

یوه ورځ په بازار کې زمونږ پاك نبي سرور
ناڅاپه په یوسپي باندې یې ونښته نظر
چي وې لیده په سترګو دغه سپي به ژړیدنه
نبي صاحب شو په فکر چي زه وکهم تري پوښتنه

چې دی په فکر لاړه بیا نو مونږ ه رب جلیل
في الحال امر وکړ په حضـــرت جبرائیل
ویل یې جبرائیل ته ورته وواېه ســــلام
چې دوست مې دی په فکر ورته وکړه دا کلام
دا سې نه دی شیطان دی ورته وکړه پوښتنه
په فکر ولې لاړې اوس یې وکـــوه پالنـه
بیا وویل پاک رسول چې ولې ژاړې پر لعینه
دا د چا له لاسه ژاړې راته وواېه بې دینه
ابلیس ویلې صاحبه زه د ځان له غمه ژاړم
یوازې شومه پاتې یک تنها دوزخ ته لاړم
بیا ویلې پاک رسول چې څې تنهـا په څه سبب
داستا دغه جزا راته بنکاره شوله عجب
ابلیس ویلې صاحبه زه خبر نه وم په ځـــان
چې دا ایت کرسي مولا لیکل په قـــران
داستا امت به یې لولي دوزخ اور به پرې حرام وي
یوازې به سوځیږم خود سقر به مې په ځان وي
داستا امت چې خلاص شي یک تنها به اور کړیږم
دا نه ملامت نه یم چې په سرو ستر گو ژړیږم

چې واورېد پاك رسول زموږ بې حده شو خوشحال

چې لولې امتيان زما نو خلاص شو له جنجال

چې ليس له هر لمانځه نه يې څوك ولولي بهتر دی

معشوق د حقاني زموږ نبي خير البشر دی

ابليس شو هلته پاتې پاك رسول شو تر ې روان

په دين باندې محكم شه چې روڼ يې دی شي ايمان

* * *

يوه ورځ امام اعظم صاحب وتلی و صحرا ته

روان و يوه د ښته كې ته غوږ و نيسه ماته

چې ګوري د صحرا له لورې راغی يو خنزير

لمن لاندې يې پټ شو لاس يې پورته كړ په وير

خنزير چې ځان يې پټ كړ پسې راغله دوه تازيان

امام صاحب مې وكوو تازيانو ته پرسان

تازيانو ته يې ويلې تاسې څه غواړی له دې نه

اوس پرېږدئ چې حيوان غريب پټ شوی دی غمجنه

تازيانو ورته ويلې دا ته څه كوې خبرې

د غه زموږ ښكار دی چې راغلې يو له لرې

زموږ ه یو بادار دی چې وتلی و په ښکار
په اصل کې یهود و یهودانو کې سردار
دا ښکار د هغه ځوان دی چې نن دې خوا ته راغلی
هیڅ شو برابر نه شو دا خنزیر مو دی موندلی
اوس راګیره چې یې بو ځو خپل ښتن ته په تلوار
نوکر یو ترې وېرېږو چې په موږ نه شي په قهار
امام صاحب ویلې تاسې نن زما خاطر
خنزیر په حق کې وکړی په تازیانو په ظاهر
تازیانو ورته ویلې زموږ تا لره سلام
تش نه ځو له دې ځایه بیا به شو نمک حرام
نمک یې موږ خوړلی هسې نه چې آزرده شي
دا مالګه داسې شی نمک خوره یې ازموده شي
دوی وو په دې ګفتار چې په تلوار راغی یهود
امام صاحب ته ویلې چې دا ښکار مې راکړه زود
امام ورته ویل بیهوده عقل دې پر سر دی
معشوق د حقاني زموږ نبي خیر البشر دی
اسلام راوړه یهود بیا په نبي اخر زمان
په دین باندې محکم شه چې روښانه دې شي ایمان

یهود ویلی کلیمه هلته دستي شو مسلمان
بیا وو تو خنزیر عرض یې وکړ په دا شان
خنزیر ویلې صاحبه زه به هم راوړم ایمان
که زه هم په جو سره د بني ادم شمه انسان
امام صاحب سوال وکړ په درګاه د رب قدیر
خاونده مهربانه بني ادم که دا خنزیر
هاتفي راغی اواز د امام صاحب په غوږ
چې واوريد امام صاحب په غوږ و داسې زوږ
خنزیر به مسلمان شي ستا قبول شو دعا سوال
ته و پوښته خنزیر نه چې معلوم شي د ده حال
په صف د بې لمانځانو به ولاړ وي په محشر
د غه که قبولوي نو را ته ووایه اکثر
امام صاحب ویلې یره خنزیره لمړ ما واوره
چې ته به مسلمان شې ولې شوې په سر دې خاوره
په صف د بې لمانځونو به ولاړ یې په قیامت
که ته یې پرې خوشال را ته وایه امانت
خنزیر ویلې صاحبه بې لمانځي نه قبلومه
داخیل شایسته صورت په بې لمانځي نه ورکومه

توبه کړئ مومنانو بې لمانځه داسې بلا ده

خنزیر تر ېګریزان دی چې مختور د دین دنیا ده

دخدای په لاره سم شی توبه باسئ مومنانو

چې هلته حساب نه شئ په کتار د بې لمانځانو

خاونده شرمنده یم ستا حضور ته هر ساعت

په روغو سترګو ړوند یم ما ونه کړه عبادت

امید مې ستا کرم دی پاك رسول شفاعتګر دی

معشوق د حقاني رموز نبي خیر البشر دی

دریاب د رحمت لوی دی آفقیر سید باوجان

په دین باندې محکم شه چې روڼ دې شي ایمان

حبار دې شم رسوله عجب حسين منور لرې

نوم نبي سرور لرې ـ مخ شمس وقمر لرې

نشته دی په ګل جهان ستا دحسن سيال

خدايزو ستا د مخ په شانې نه و بينم مثال

ته نبي اخر زمان دوست د ذوالجلال

په واړ نبيانوکې ته نښه د دلبر لرې

ته دمديني سردار فخر د عرب عجم

څوک چې دې دتا په لاره هيڅ نه ويني درد وغم

څوک چې شي له تا بيزاره هم پرې راځي دم په دم

نوم دې محمد اعلیٰ لقب خير البشر لرې

ښه څلور ياران دتا اولين صديق دے

واړه په فرمان دتا شاه عمر رفيق دے

حضرت عثمان دتا څه عجب عتيق دے

قتل يې کافران کړه پهلوان علي حيدر لرې

تل داستا صفت کې زه سيد باوو حبان يمه

ګرڅم حقيقت کې تل ناست په بيابان يمه

ستا په طريقت کې هر ساعت حيران يمه

وکړه لږ نظر پر ما ته تاج د محشر لرې

رب دلوړي ملایکوته فـرمـان راغی
جبرائیل سـره نبي اخر زمـان راغی

دوزخونو تړلې ویلې کرارې وکړې
آب کوثر تړلې ویلې فواری وکړی
بیا خوارانو تړلې ویلې نندارې وکړې
ما بللی خپل حبیب په لامکان راغی

* * *

دست بسته ورته لاړ شئ په خدمت سره
صف په صف شئ په تعظیم په ادب سره
ګوندې خلاص شی د ضخه په برکت سره
په براق باندې سردار د مرسلان راغی

* * *

دوزخونوته ویلې چې ارام شئ ټول
ارامي او قرارې په خپل مکان شئ ټول
د دوزخ دروازه وانو په سلام شئ ټول
چې سردار د مرسلانو په اسمان راغی

* * *

جنتونو ته شو امر چې سنبال شئ ټول
بیا حورانو ته شو امر چې په خیال شئ ټول
د جنت ګلونو بیا تازه فی الحال شئ ټول
محمد رسول الله دوست د سبحان راغی

* * *

لویه خدایه په عزت او خپل کرم سره
بل په روی د محمد نبي اکرم سـره
مشرف مې په ایمان کړې په یو دم سره
ستا درګاه ته شرمنده سید باووجان راغی

مخ ئعکې پسېو ږمی په شغلر دار دی

ستا په جمال درست جهان گلزار دی

ستا په جبین شبنم و عنبر وینم

تا نه خجالت شمس و قمر وینم

په چمن کې سرو و صنوبر وینم

سروه ستا له قده شرمسار دی

تا د نور په مخ کې حجاب ونه دي

ماچې وي لیدلي کتابونه دي

رنگارنگ په کې ډیر ثوابونه دي

حسن دي قدرت د کردگار دی

پورته دې رتبه پورته عزت لرې

ډیره دبدبه پورته عزت لري




جار دې شمه خه شیرین صفت لرې

جار دې شمه نوم دی احمد مختار دی

زه سید باور جان فقیر حیران یمه

ناست د بې کسی په تش میدان یمه

شکر چې په صدق مسلمان یمه

وایم کلیمه دامې اقرار دی

زه په تا مین یم اے صنم زما

ته د زړه محبوب یې او همدم زما

رب په تا لیږلی دی قران نبي

مونږ په تا راوړی دی ایمان نبي

سر و مال مې تا نه شه قربان نبي

ستا په نبوت یقین دی سم زما

ستا په روی یې کل جهان پیدا کړلو

ځمکه او اسمانونه یې هویدا کړلو

ټول طبق طبق جدا جدا کړلو

ستا په صفت سم ګرځي قلم زما

راشه په بستر وکړه پرسان زما

کیږده قدمونه په چشمان زما

خدایږو ته یې مرګ او په ایمان زما

بې له تا نه کله خېژي دم زما

زه سید باو و جان په یک امان سره

جنګ لرم د خیل نفس و شیطان سره

نا ست یمه سودا مې ده ایمان سره

وکړه لږ نظر نبي اکرم زما

نشته داسې څوک چې له جوشه وغزیږینه
ووایي چار بیته چې یې شوندې نه لړزیږینه

*

عشق دُر دانه دی او دا زړه لکه د سین دی نا
چا د سین له مینځه راویستلی بې نګین دے نا
تا سې راته ووایې چې د چا لباس رنګین دی نا
څوک چې عزم نه کا هغه ځای ته نه رسیږینه

*

ګرځي سرګردان سر و کار یې وي سودا سره
شعر حقیقي کله جوړیږي له دنیا سره
نا ن ته یې وګوره چې هیڅ نه غزیږي چا سره
زموږ شاعران وی(۱) شعر یې کنځلو نه جوړیږینه

*

شعر حقیقي جوړ کړه چې خدای د رنه راضي شینه
څه وینا کوې چې حق تعالی هلته قاضي شینه
راشي د غه شعر حق تعالی لره عرضي شینه
غواړې رسوایي خو شعر ګو کله خلاصیږینا.

(۱) وی : وایي.

شعر حقیقي د شاعرانو لوی کوښان دی
ځان ته شاعر وایي دی اګاه که ځان دی
لاړ یې وړکه کړې په غلطه لار روان دی
او شبکې یې جاړې له ستر ګو ځي لکه وریږینه

*

سل او نه دېرش عدد راځي له اسانت سره (۱)
ځای دی که ځه شو هویدا له سعادت سره
دغه اشارت ده د شاعرانو قناعت سره
غواړي نتیجه د دې غزل که څوک رسېږینه

(۱) سل او نه دیرش یعنی (۱۳۹) عدد ابجد له مخې د سید باورجان
نوم دی.

په جنت کې ښا ښايسته حورې غلمان ګرځي

په دوزخ کې همګي لړم ماران ګرځي

* * *

په جنت کې رنګارنګ ښا يسته ګلونه دي

په دوزخ کې بل څه نشته عذابونه دي

په جنت کې د توتيانو آوازونه دي

د جنت په مناروکې مومنان ګرځي

* * *

په جنت کې درې خلور ويالې بهيږينه

بل د شاتو او شيدو دي چې جوړيږينه

په دوزخ کې د زقوم شربت څښل کيږينه

د دوزخ په دروازو کې تور زاغان ګرځي

* * *

نور مې بس دي داعبث عبث ابياتونه

دې عبث عبث ويلو مقالاتونه

زه فقير سيد باوو جان له کمالاتونه

صفتونه يې زه کړم خو مې ژبه په دعا ګرځي

چار دي شم رسوله تن دي پاک دی له شيدو څني
تير شوي خدای په حکم له اويا زره پردو څني

* * *

چار دي شم رسوله هغه شي چي تا ليدلی و
عرش معلا کي دي په سر بستر کوکتلی و
حضرت موسیٰ په کوه طور کي اور يدلی و
والي کتابونه ديدن زيات له اوريدو څني

* * *

چار دي شم رسوله داستا نوم نبي اکرم دی
وويل پاک الله چي انتظار لوح و قلم دی
راشه زما دوسته برکت ستا په قدم دی
عرش معلا شو مشرف له خوشيدو څني

* * *

چار دي شم رسوله امر وکړه رب جليل
شپه وه د معراج چي په تا راغی جبرائيل
راي ووست براق له جنت نه په تعجيل
مست هغه براق شو په ارام له تير يدو څني

جار دې شم رسوله شوې داخل په لامکان
هلته د رسره وو روحاني څلـور ياران
کېدېښود قدم په د ستگير شا مــــردان
لوړه يې مرتبه شوه هم د خپل هم دپردو څـنې

* * *

چار دې شم رسوله زه عاصي يم گنهگار
خوار سيد باوو جان فقير په تمه د ديدار
فضل وکړم خوار يم زه له تا نه کـــــردگار
قل کوم سوالونه ترې خلاص کړې له اندو څـنې

په خوب کې مې لیدلې پرې وار دې د چا
شين خال مې ننبه کړې په رخسار دې د چا

*

په خوب کې مې ليدلې ګلاب ګل دې نا
له شوقه مې نيولې په منګول دې نا
چې پاڅيدم له خوبه حساب بيل دې نا
دا ګل مې چې ليدلې په ګلزار دې د چا

*

دا بوې د داودي مې نه هيريږينه
چې هر سبا دماغ کې مې لګيږينه
د عطرو په بوتل را معلوميږينه
د عطرو دا بوتل مې په بازار دې د چا

*

دا ګل چې مې ورک کړې سرګردان يمه
چمن په چمن ګرځم پريشان يمه
چې چيرته به يې بيدا کړمه حيران يمه
په لاس کې يا په سريا په کنار دې د چا

د اګل چې مې لیدلی تور او سپین وایم
نه تور دی او نه زیړ په رښتیا شین وایم
تور او سپین به څلیده ښایسته رنګین وایم
باغبان یې را ښکاره کړی چې ما لیار دی دچا

*

فقیر سید باوجان په لغمان لټوم
لغمان کې پیدا نه شو کابل جان لټوم
پوښتنه باندې څم عربستان لټوم
زښق د مدینې مې په دستار دی دچا

تا نه زه قربان شم قربان مې مال و سر نبي
موږ دي امتيان يو ته زموږ يې پيغمبر نبي

*

بې ته مې کتاب کړ ما په ستر ګو ستا صفت وليد
خاص محبوب د رب يې په رښتيا مې ستا قوت وليد
نه سوځي په اور کې که چا مهر د نبـوت وليد
بل څوک داسې نشته لکه ته يې د لاور نبي

*

امر شو د خداى معراج ته لاړه ته په تعجيل سره
صدر المنتهاکې هلته کوز شو جبرائيل سره
خداى په قدرت تونو ته په خوايم د دليل سره
هغه ځاى ته يوړې جبرائيل وه ستا رهبر نبي

*

وويل جبرائيل چې زياتي نه شته دى قدرت زما
يا پاکه رسول محمد غوره ټول قـوت زما
مخ کې تجلا د نور ده نه کيږي طاقت زما
يوړه ته له هيبته زما سوځي بال و پر نبي

تېر شوې لکه برق قاب و قوسین نه په یوان سره
لاړې لامکان ته دالله په خاص فرمان سره
هلته بل څوک نه وو غیر له ذاته د سبحان سره
غیر له تا څوک نه وو په حضور کې معتبر نبي

*

دې کړه مهماني خاوند تعالی په خپل قدرت سره
ورېږي نعمتونه خلعتونه په عزت سره
درې کړه جُغه خو شالګرځه خپل امت سره
ووېل پاک الله چې ته سردار یې د محشر نبي

*

زه سید باو وجان فقیر د استا د دې ګدا یمه
هیڅ تو سبه مې نشته اخرت ته په سودا یمه
غرق یم په ګناه کې څوک مې نشته یکتنها یمه
لوږ یم په محشر کې په ما واچوه څادر نبي

*

واځه مومنه وایه ثنا مه شه غافل
د تیر عمر توبه وباسه چې وې جاهل

*

واځه مومنه وایه ثنا دنیا فاني
هلک وې پسې راغلې ورور ته به ځواني

طفلي عمر دې تیرکړه همه په ناداني
لا اوس هم په ځان نه رسي نشوې عاقل

*

ځواني کې چې قوت وه د تاتیرشو عبث
تاکله به زړه فکر وکړ د پیش و پس

د مرګ هنګام دې نه و به زړه بې دهوس
ځواني دې به پیري تیره کړه نشوې عاقل

*

دا تو ره بڼیره سپینه شوه ستا لکه کرباس
یې غابن دې په خوله پاتې نه دي شولې کنډاس

ته اوس هم په زړګي نه لرې د مرګ وسواس
دا سپین ویښته دې تاسې د مرګ قاتل

*

واځه سید باوو جان نیاتي مه وایه نور
لا ځاندي مولیانو پورې هم وایي تور

لا تا نه هوښیاران هم شته هم لري زور
هوښیار ولره بس کړې یاره دا دلایل

اویا ژره صحابه تیر شو نبي اکـــرم
مولا دي باندې کړی دی داخپل فضل وکرم

* * *

اویا نده صحابه تیر شو قاب و قوسین
داخل د لامکان شو په منزل شاه دارین
محبوب مشرقین وګوره هـم مغربین
نیازبین د پاك الله لیکلی لـوح و قـلم

* * *

زحمت وه په ایوب او صالح هم په جرجیس
او یازره یې سره کړه خلکه قام د ابلیـس
ملګری شو لره قام سره شیطان خبیـس
اخر خو تري شهید که غریب په دی عالم

* * *

یعقوب علیه السلام وګوره د یوسف پلار
حضرت یوسف له غمه پروت وپه ژړه بیمار
په سترګو ړاندې ړوند شو غریب شو خوار و زار
چې تله به یې له سترګو څخه د وینو نم

* * *

یو لک او څلرویشت زره وو زیات پیغمبران
همه وارو نبیان مسلمان په مولا ګران
موسی کلیم الله وګوره دوست د سبحان
د ټولو انبیا وو پلار دی بابا ادم

* * *

راحمد سید باوه جان ژوره مه کوه سودا
نبي علیه السلام په شان لري پیشوا
ژړا یې په ژړه کې مه پخوه د غم حلوا
دا لوی نادانی به دې وي چې کوې غم

زه ښه پوهېږم پر تا — ته یې نیمګړې د نیا
وفا دې نشته ټول عالم دې په ځان سور که ولې
خلک دې چور که ولې

*

مدام ډولونه کوې — عجب سېلونه کوې
په غونډه کې ناست یې په سر چا باندې نظر دی د استا
دغه هنر دی د استا

خلک تېر باسې په ځان — ته یې رفیق د شیطان
هر چا ته وایې بېلا بېل چې زه د استا یم آشنا
زه ښه پوهېږم پر تا

جدا دې فرق که نا — مخلوق دې غرق که نا
د دلبرانو په شېر ځان دې مشهور که ولې
خلک دې چور که ولې

*

سر جاتر ړو ړوکوې — په میدان د ورکوې
د پر عاشقان د تا سر تور سرونه غروکې ګرځي
بعضې میړونه کې ګرځي

بعضې هر دم کړي وسواس    تا لټوي کوڼ و پاس
بعضې قلبي شیو لې وایي که یې زه کړم پیدا
زه سنه پوهیږم په تا

. . . .

*

دښني کسان دي زما    دغه رنګ ګسان دي زما
احمقان دي دي چې په ما باندې نازیږي مدام
شنه ورته وکړه پام
چاپسې نه ګرځمه    چاپسې نه پرځمه
که څوك راضي له نا علاجه زه به یې څه کړم جدا
زه سنه پوهیږم په تا
زه لې عزت کومه    ډیر محبت کومه
سود خوړ ته وایه چې دې ځان راته ترېور که ولې،
خلك دې حیور که ولې

چې پرهيزګار د دنيا    رانه يې ژاړ د دنيا

زه سبه پوهيږم په اول کې يې شړلې يمه

دوی يې رټلې يمه

چا چې خوړلې يمه    چا چې ګټلې يمه

په دغه وارکې زه به يې کړم توبه واوره صدا

زه سبه پوهيږم په تا

ته دومانوکړې ساه    هرچا ته لاس کړې دراز

د پرهيزګارو سره سبه ځان دې ترېورکه ولې

خلک دې جوړکه ولې

*

دنيا وايي په حساب    چې زه يې کړم لاجواب

ای عزيزانو موږ ټيپله سره يو ملامت

اخر به شو ندامت

دومره هرڅوک پوهيږي    چې دا دنيا پوهيږي

سيد باوو جانه هرڅه پريږده اول مونځ کړه ادا

زه سبه پوهيږم په تا

مولا دې کړې زبان    وايه ثنا د رحمن

دومره پوهيږې په دنيا ځان دې منفورکه ولې

خلک دې جوړکه ولې

تل دې د دروغو بيل په لاس، ګرځي بدانو سره
ولې ظالمه اخرت کوتې دې ورانې کړلې

* * *

بيل دې په لاس دی په کمبخته ودانې وکړه
دغه دې وار دی په قوت پهلوانې وکړه
د ښو برجو په سر کې کينه بيا خانې وکړه
ګوزاران دې نه شي د دنيا له کاذبانو سره
چې دې ماڼۍ په چارواکې باندې ودانې کړلې
...

* * *

جواب دې څه دی چې الله درنه پرسان وکړي
د نيک عمل يا د لمانځه يا د قران وکړي
درنه پوښتنه چې د دين او د ايمان وکړي
چې د عمل کتاب دې واخلي بيا بيان وکړي
لکه چې اوس دې دښمنې ده عالمانو سره
...
ښه دی

* * *

مولا ویلي لعنت الله على الـــــکا ذبیـــن
څوک چې د دروغو شهادت وايي هغه دی بې دین
چې عالمان درته غوبزي ته پرې نه کړې یقین
طلاق د ښځې ولې اچوې د بل په زمـــین
که حق دې پټ کړ حسابېږي د دوستانو سره
سنه دې ونه کړه چې طلاقې دې خوراني کـړلې
...

* * *

شاګرده واوره نوم د نوح نبي مې هیـــرشو نه
شاعرنه وکوه پوښتنه ولې زیـــــرشو نه
پلار چې هغه نوم ؛ یینې و نه ولې هـــیرشو نه
د نوح مانا ورځنۍ غواړم چې برســـیرشو نه
سید باوجان په جنجال پروت دی شاعرانو سره
رقیب جاهل دی دنه په ویئې مې چالانې کړلـې
...

هوايي خبرې مه کوه دلبرې
ما ته راکړه هغه سرې لبې لالونه
زه دې وسوم په اوربدو څنو ببرې
په سينه دې عورهېدلي دي جالونه

هوايي خبرې مه کوه هوښيار شه
گل صنمې زياتې مه گرځه سرتيز
له غوسه رابانديې مه کوه قرار شه
زه عاجزيم ستا په غم کې ريزمريز
يا ذوستي راسره وکړه يا بيزار شه
دا عبث کاروونه پريږده دانگريز
نه پوهېږم چې ته څومره نخره گرېې
په سپين مخ دې کتارکړي شنه خالونه

* * *

ماچې ليبني دي خالونه لکه ستورې
بل مې ځانگې په سرو شونډو کې پېزوان
سلسله مې اويزان په سينه بخوري
په وه بل مې کتار کړي سره گلان
عاشقان راپسې گرځې په سرتوري

خال مې اینبی د اجل په زنخدان
جنګه رانه چا پېر وایي سـندرې
ګټه کشمیره مې دي خوښتي سره شالونه

* * *

په رقیبه ته عبث ولې غـزېږې
خبر نه یې ته د دین له زیات وکم
زه فقیر سید باو و جان یم که پوهېږې
اولاده د محمد نبي اکــرم
له قدیمه وې تابع ولې غـزېږې
لګه مار په دایره کې راشـه سم
نه پوهېږم چې قایل یې کـه مـنکر یې
ماجوړ کړي په انګر باندې نالـونه

نن بیا مې د نظر لاندې راځي ماه تابان — کوم ورپسې شور
شین خال یې په جبین د وروځې مینځ تورې چشمان — ستې یې کړم په اور

نن بیا مې د نظر لاندې راځي هغه دلبر — الفت لري بسیار
فقیر یمه زه هیر کچکول په غاړه قلندر — سوال ګر یمه د یار
خاونده میربان یې کړې چې وی وینم بشر — خپل سر به کړم ترې جار
لاس نه ورځي اتلیه لمسون د غمازانو — که راکاندې پیغور

نن بیا مې د نظر لاندې راځي دسته د ګل — تازه وه په چمن
زلفانې یې خورې ورې پرتې په سپین ګوګل — چین چین شکن شکن
فریاد کوم له سوخته شو زخمي مې دل — مجروح مې کل بدن
که وو وینم په سترګو هغه سروه خرامان — مدعا مې نشته نور

داغه شی دی شاعره فکر ته ونیسه سم — لیدلی مې کتاب
مرغه دی نه یې سر نه یې تنه نه یې رقم — نه غواړمه جواب
سیاه چاه کې یې مقام دی الوتل کوي هر دم — په حکم د وهاب
چې وځي له سیاه چاه نه پسې ژاړي ادمیان — زاړي کا په سر تور

دا زه سید باور جان په افسوس وپسې ژاړم — اشنا ګرځي په باغ
اشنا شو بې وفا زه بېنوا ورځني لاړم — په زړه یې راکړه داغ
هغه ښکلی بشر زه همیشه له خدایه غواړم — سپین مخ لکه څراغ
دلبر آب کوثر لري په چاه زنخدان

کہ مې دلبر وا خلي خبر | پہ صغہ ساعت کې د محشر

*

د مسو جوړ بہ کړي زمين | وړې بہ شي سوړ لکہ آئين
فضل د رب العٰلمين | غواړم بہ ړوي د پيغمبر

*

د تندې زوړ بہ شي دھشت | خلق بہ يې سوځي لہ وحشت
کہ پاک اللہ وکړي رحمت | راوړي ساقي آب کوثر

*

کہ څوک د نيک لري عمل | ھغہ بہ نہ سومي خلل
ځي بہ جنت تہ مکمل | پہ سختہ ورځ کې د محشر

*

گناہ کاران بہ شي يوصف | د وی بہ ولاړ وي يو طرف
ځای بہ يې نہ وي د مصرف | حيران ولاړ وي نوړبند سر

*

سيد باوجان يم گناہ کار | دې خپل مولا تہ شرمسار
سره د خپل گناہ بيسار | د پاک اکبر

زه په غموکې شوم غمجنه — کړم غم له غمه بې وطنه
غمونو غم راته راواړونه — که غم له غمه ویریدنه
بې ما به نه راتله مجبوره ضمونه
غماز به ولې د غمو لوبې کوینه

* * *

ځان دې له ماسره پخلا کړه — سپینه خولګۍ دې ماته راکړه
ماته دې مخ غماز ته شاکړه — زړه په سلا کړه ځواب راکړه
زه دې له بلې یارۍ وویستم مینه
غماز به ولې د غمو لوبې کوینه

* * *

دنا به خنګه مدعا وي — تاته مې مخ غماز ته شا وي
زما به تاته داوینا وي — زړه په سلا کړه جواب دې داوي
که بله وینې ماته مه ګوره مینه
غماز به ولې د غمو لوبې کوینه

* * *

داخو دې څه چارې په ما کړي          غماز دې بیا راته بلا که
رقیب ته مخ ما ته دې شا که          داخو دې داسې جواب راکه
لکه څو ندۍ په مرې خاورې واړو ینه
غماز به ولې دغمو لوږې کوینه

* * *

مبارک تا باندې وطن شي          بلا زما په هډې گفتن شي
سید باوو جان دې په گلشن شي          د تا دې خاورې په دښمن شي
زما په مخ کې داسې ما وایه مینه
غماز به ولې دغمو لوږې کوینه

پیشکه ببین خوده[1] بسوا کرد ،،
دیگکهٔ لیسید خوده سیا کرد ،

* * *

پیشکه ببین چطور قرار است
که موش میشوره برایش تیار است
عمر موش ها از دستش خوار است
پاهای خودهٔ ترش بالا کرد ،

* * *

پیشکه ببین از دوغ پرهیز است
مرض گرفته امروز نوخیز است
چشمان پیشک چه عجب تیز است
چرغانه مانده شروع به شورا کرد

* * *

پیشکه ببین دمش دراز است
به موش میرود به ساز و باز است
چشمان پیشک یک کمته واز است
جای موش ها را میان اسیا کرد

پیشکه بین در نوک بام اســـت
پوست پیشک گل بادام اســـت
نانک در داش[5] رفت به کادان اســـت ،
صاحب خانه سگ را صدا کـــــرد

* * *

پیشکه بین سر پلـــوان اســـت
گنجشکه خورده چقه[6] نادان اســت
غزل جور کـــده سید باوجان است
کوتک را گرفت پشتش اِلا کـــــرد

---

(۱) خوره : خور را
(۲) ریگکه : دیکک را
(۳) خوره : خود را
(۴) چرغات : ماشت
(۵) داش : دهنش
(۶) چقه : چقدر .

نبي اکرم دی نبي اکرم دی
دده لنور څخې پیدا لوح و قلم دی

* * *

ذات د رسول نه و پیدا
عرش و کرسي کې ناست بالا
پرې نوشته وه لا الا
شیطان کافر وه باندې کړې خپل ستم دی

* * *

چې دغه درد د ولادت شو
بي بي آمنې باندې زحمت شو
ننه کوټه کې بې سیرت شو
مرغه له پاسه پې[1] وزر یینې محکم دی

* * *

جام د شیدو ورته تیار شو
بي بي چې وڅښنه بنه یې روزګار شو
بي بي دا وڅښنه دا یې په کار شو
رسول پیدا شو د کافرو پر سر غم دی

.... .... ..............

(۱) پې = پرې

د رسول پې جګ کړ اسمانو ته
ملکې راغلې ننداړو ته
ګوره د پاک خدای قدرتو ته
دده نه پورته په عرش چا ایښی قدم دی

* * *

سید باوو جان یم ګناګار
وخپل مولا ته شرمسار
سره د خپل ګناه بسیار
صورت مې جار د پاک نبي نه هر قدم دی

الهي من نه مېدانم — په علم خود تو مېداني

څوک دی کړه شاه څوک دې گدا — چا ته دې ورکړه سلطاني

*

څوک دې بیمار کړه په بستر — څوک دی په بحر څوک په بر

څوک دې شهید کړه په خنجر — مثل حسین نوراني

*

امام حسین په ټټر دی زخمي — د کربلا په لوے گرمي

مړه تږه اوښکي راځي — د زلیخا په پیشاني

*

امام حسین یې کړو شهید — شمر په حکم د یزید

څنگه شو سپي معفر پلید — د کربلا په مېداني

*

تیر شو سختي سید باد وجان — د معفر کس په خدا ندان

چي ورته ورکړه پاك سبحان — په لا مکان کې مهماني

## د چای کوم صفت په ښه مینه محبت

مجلس کې ښه ښکاریږي د چاینکو سرنګ ورنګ

زیړ ګل په شانې رنګ

* * *

پاکیزه چای بردار ه په اور وکړه تلواره او به دې کړه تیاره

او به دې سموار ته واچوه په خوګړت

په ښه مینه محبت

* * *

بیا اوړ په کې خطا کړه ښه تینګه وته ملا کړه لاسونه دې صفا کړه

پتنوس کې ګوتې ووهه چې ورک شي ترینه زنګ

زیړ ګل په شانې رنګ

* * *

چای راوړه له یخدان چاینک ته یې چسپان کړه په قدر یې ښه شان کړه

بیا ګوره سموار چې وخوټیږي خوګړت

په ښه مینه محبت

د چایو یو مثقال    ژر واچوه فی الحال    اول یې کړه کنګال
چې خیرې ترینه لاړ شي خدای دې درکړي برکت

په سبنه مینه محبت

* * *

چاینک له اوبو ډک    سرپوښ ورباندې کلکه    اور باندې یې کړه لکه
چې جوش هغه چاینک شي بیا له اوره یې کړه څنګ

زیړ ګل په شانې رنګ

* * *

چاینک چې وخوړ جوش    ژر دورکړه له خروش    بیا داخله پتنوس پوش
چاینک پتنوس پوش لاندې کړه پټه په حکمت

په سبه مینه محبت

* * *

قاشق ورسره خاص    تر ونیسه په لاس    بیا یې راوړه په اخلاص
بیا کېنه په میدان کې په ادب سره خوش رنګ

زیړ ګل په شانې رنګ

بیا ته کینه په فرش پیالې دې کړه اوکش نور قند کړه پکې مرش
ورو ورو سره چای واچوه چې غږ نه بشي اوچت
په منبه مینه محبت

* * *

چای واچوه ګلرین پیالې دې کړه لبریز بیا کینه په مسکین
پیالې د ناليکيو سره شمه[1] او پتنګ
زړه ګل په شانې رنګ

* * *

کم چای اصلي د چین نه وي د ماچین بل خوند که انګبین
او نه انه کړ مثقال یې شي په لک روپې قیمت
په منبه مینه محبت

* * *

فقیر سید باوجان په حال د غریبان په منبه چای دی نقصان
خود رنګ که شنبلي نه شم خو خود رنګ نه يې زړه تنګ
بنا ګل په شانې رنګ

---

(1) شمه - شمع

تیر شول په معراج کې د نبي اتلس کالــه

وګوره رقـــم

بخیر له ملایکو څوک خبر نه و له حالـــه

راغی صبحدم

*

اتلس کاله یې تیر کــړ معـــراج کــې

په عرش کې ناست و سنه په مزاج کــې

پاک الله چې وکړلې خبرې بې و لا له

خودمه یې قسم

*

بې واسطې یې وکـــړ بــې خـبــر بــې

زموږ رسول لکه شـــــــکر بــې

هره خبره یې خالي نده بې له ســوالـه

خپل امت په غم

*

دا دپردې خبرې نـــورې بـــې

نبي ته یې وویلې سنه ورته ګـــوربـــې

دا دپردې خبرې ونه کوې حیالـــه

ونه باسې دم

---

(۱) پټې - پردې

سوال ئې نه کړې وکړه زموږ رسول

دامت غم کې رب کړه قبول

د ویلې خاوند چې ته مې د وست يې پاکماله

نشته زبان وکم

*

تاج د لولاک د ده په سر شو

چې بیرته راغی عالم خبر شو

زه سید باور جان په کتاب پروت وم بې مجاله

فکر مې شو سم

خوله دې کنډول د زړو مانوش کړې بنګ په کې
ستا د لبو رنګ په کې

*

خوله دې جام د زړو مخ دې سوررنګه مخمل دی
سپینه صفا صیقل دی
چاکه د سینې په شان مې هیڅ نه وینم زنګ په کې
ستا د لبو رنګ په کې

*

خوله دې جام د زړو د عسل په کې شربت دی
دا د خدای رحمت دی
قول په کې محبان شو د عاشقو وینم جنګ په کې
ستا د لبو رنګ په کې

*

مینه کې دې خوښ یم مګر یاره جدایي وینم
ستا بې وفایي وینم
مینه دې ګړنګ سید باوجان پریوتو ننګ په کې
ستا د لبو رنګ په کې

زه په رښتيا يې له تا　　　　چيرته دلبر نه لرم
تا نه خبر نه لرم　　　　خدايږو بل درنه لرم
شاه دل شاه دل شاه دل زما

*

لکه مجنون درپسې　　　　ګرځم زبون درپسې
وايم ليلا تل به ته را　　　　نور په ځان خبر نه لرم
شاه دل شاه دل شاه دل زما

*

شپې مې تاريکه شوله　　　　ورځ مې تاريکه شوله
راشه په ما جلوه نما　　　　مخکې بل ارزو نه لرم
شاه دل شاه دل شاه دل زما

*

سر په صحرا ګرځمه　　　　مست مولا ګرځمه
څه کړم دنيا بخت دې زما　　　　تا څني خبر نه لرم
شاه دل شاه دل شاه دل زما

سيد باور جانم ملول　　　　ديار په درکې مشغول
وکړه شفا ورځ [illegible] د جزا　　　　بل شفاعتګر نه لرم
شاه دل شاه دل شاه دل زما

افسوس افسوس د غم فاني دنیا وفا نه لري
چا نه بقا نه لري ارمان ارمان دے

*

| | | |
|---|---|---|
| د غم فاني دنیا کې ډیر ډیر مخلوقات وو | واړه حیات وو | زموږ په شان |
| سترګې یې لا نه وې غړولې چې وفات وو | واړه ممات وو | تیر شو دوران |
| په سترګو یې وینو دا زموږ سترګې حیا نه لري | چا نه بقا نه لري | ارمان ارمان دی |

*

| | | |
|---|---|---|
| زموږ نه مخکې په سر لوی لوی پاچاهان وو | هم سلطانان وو | ډیر یې لښکر |
| په د غم خاوره چې موږ ګرځو ډیر ځوانان وو | هم ګلرخان وو | لکه قمر |
| د دنیا روغې ورځې ته ګوره چې سبا نه لري | چا نه بقا نه لري | ارمان ارمان دے |

*

| | | |
|---|---|---|
| ای شاعرانو ستاسې مینې مجازي وینم | خوشې بازي وینم | د هلکانو |
| د عاشقۍ د زمانې ده خود تازي وینم | دستداري وینم | واورئ زلمیانو |
| ردیف دې پیر القاب دې بل ته چې مانا نه لري | چا نه بقا نه لري | ارمان ارمان دے |

*

د خدای لپاره زړه مې وچاود له غزلونو ســره     پېدا وېلو سره     واړه عبث
هیڅ فایده نشته د غه   تود لــو لــو ســره     پوچ پوچ کنځلو سره     مه کړئ هوس
شعر یو مشغل دی خود تا په لاس رنځانه لري     چا ته بقا نه لري     ارمان ارمان دی

*

شاعر هغه دی چې القاب یې معرفت سره وي     له حقیقت سره وي     بیل کړي حروف
هر یو القاب یې موافق له شریعت سره وي     په طریقت سره وي     منه وي معروف
عاجز فقیر عرض هم په حیا نه لــري     چا ته بقا نه لریکه     ارمان ارمان دے

---

وګوره زما دلبر ته قامت زیبا لري
زلفې بې بها لري

*

توري زلفې توري وروځې توره شپې نه توره دي
غم دې په ما موړې دي
توري مژګان توري چشمان نرګس شهلا لري
زلفې بې بها لري

*

ماه تابان ګل ریحان سروې بوستان چمن
بوی لري مشک وختن
مخ صنوبر تازه وتر څه قد رعنا لري
زلفې بې بها لري

*

مړې ای ژوندی کړ د قران اسم اعظم سره
د مولا کرم سره
خوله مبارک تن مبارک دم د مسیحا لري
زلفې بې بها لري

ګرځي حیران سید باوو جان خلکو کې فقیر دی

په زړګي زهیر دی

وایي غزل سبه په اټکل څه شیرین وینا لري

زلفې یې بې ساري

اشنا نه گوره چې په سر یې ټیکری تور نیولی
په لاس کې لسوړ نیولې

*

ونه شمشاد مې د یار لرې د نرګس رفتار
دوښې لاندې یې موړ د وه سترګې غلوړ نیولې

*

مکیش یې شین دی په تن نر ماڼي وسو بدن
څه وکړم خدایه چې له ما سره یې زوړ نیولی

*

سپین یې پرتوګ دی په ځان خاونده زه یم حیران
دا سپین بنګړي یې په مړوند کې د لاهوړ نیولی

*

لوګی یې خیژي تور ه لوړ ولګه جانر ور ور ه
سیدباورجان د دې په سر ځانته پیغوړ نیولی

وکړه شفاعت چې درمانده يمه رويداره

يا نبي ســـــــــرداره

* * *

وکړه شفاعت نبي پروت يم په زحمت نبي

بل څوک داسې نشته ته يې ځيله يې رويداره

يا نبي ســـــــر داره

* * *

ته چې شفاعت نه کړې دهر يوه امت نه کړې

بل څوک قدرت نه لري چې يې بوځي له درباره

يا نبي ســـــــرداره

* * *

نه شته دی کتاب مې خه وايم جواب مې

له مړوند مې نيسه عذر ته وکړه غمخواره

يا نبي ســــــرداره

* * *

نشته دی براق سوځي مې تالاق

ماسيد بارو جان له لاسه نيسه ناز وزداره

يا نبي ســـــرداره

چې ستړګې واړومه هر خوا ته جهان وينم
ستا نبي دوران وينم

*

څلور ياران د نبي ... په الله ګران د نبي
په دغو ټولو کې علي صاحب پهلوان وينم

*

اسم طه هالري ته ... محمود والري ته
الم نشرح سره صفت ستا په قران وينم

*

وير د بدر ده داستا ... لوړ مرتبه ده داستا
په لا اله الا الله جبين روښانه وينم

*

امت به ستا وي وړاندې ... د عرش تر سيوري لاندې
کتار کتار پسې د لوړو امتيان وينم

*

ته چې [illegible] ملامه ... [illegible] د ژوره
د [illegible] لاس کې [illegible] وينم

په دغه ورځ د جزا ... چې امتي کړي صدا
نه مستحق د شفاعت سيد باوو جان وينم

یار ته مې رسیږي چې له خلکو بېګانه نه شي
مست لکه مجنون دیوانه نه شي

* * *

نه رسیږې یار ته څوک
هغسې دلدار ته څوک
څوک د یار په مینه دې اصیله د ږ دانه نه شي
مست لکه مجنون دیوانه نه شي

* * *

مینه د خوبانو کې
غم د مهرویانو کې
څوک لکه فرهاد غونډې په عشق کې مردانه نه شي
مست لکه مجنون دیوانه نه شي

* * *

ای سید باوو جانه څوک
نه به شي مستانه څوک
څو شراب د وصل په خوله د که پیمانه نه شي
مست لکه مجنون دیوانه نه شي

زه دې قربان شم افلاکو نوکې مکان لرې

مخ ماه تابان لرې

* * *

حسن دې ډېر دی نبي لـه حده تېر دی نبي

څکه شيدا شومه په تا سنا يسته چشمان لرې

مخ ماه تابان لرې

* * *

دتا د مخ په کتل شمس وقمر شو خجل

په لا اله الا الله جبين روښان لرې

مخ ماه تابان لرې

* * *

حضرت يوسف کنعان دتا د يدن ته حيران

په نوکرئ کې چوپړ پرې خدمتګاران لرې

* * *

٣

سيد باوجان يم غلام کرم مديني ته سلام

ته همنشين سره ددين څلور ياران لرې

تیر شو هوس په عبث را نه لاړ یې
راشه توبه کړه که ایمان خدای نه غواړې

* * *

ته لې شغال سیالي کړې د ګوړ ګانو
لاس ننباسې په خوله د زمریانو
ځان دې ساته د زمریانو له داړې

* * *

په باب د شاعري کې کوم نصیحت
شاعرچې امي دی پرې حرام دی صفت
نه وي خبر دی به وړانې ویجاړې

* * *

زه چې عزیزم لرم ډیر قوت
سید باوو جان یم لرم علمیت
کله به خلاص کړې ما ځنې غاړې

ادکې مورې وکـــړه ســـــوالونه
رنګ مې زېړېږي وچې شونډې مې لالونه

* *

لاړه شه مورې محترلام ته    تر د بنایسته بابا سلام ته
نذرې ورکړه دا زما دسر شالونه

* *

مورې ویل ای زما لورې    اخته په رنځ کې دنا سورې
دچاله مینې درته پیښ شو جنجالونه

* *

لورې ویلې زما مـــورې    خبرې ته مه کوه سپورې
سنه دې لیدلې دې چې وران مې دې خالونه

* *

سید بادو جان دردېدواشي    عمر به یې تېر سنا دې به راشـــي
اخر به ونړانګي دزلفو په تالـــونه

ادکې یا ښیزه چې غل دی
په نیمه شپه یې بیه ماکړی هسې چل دی

* * *

لورې و یلې زما مورې          خبرې و نه کوې سپورې
زه بې ګناه یم شروع کړی دې ګل ګل ذمے

* * *

مورې و یلې زما لورې          په تا پوهیږم بې شعورې
تاچې پرون و بل جوړ کړی الول دی

* * *

مورې له خوبه شوه بیدار          دیره خپل لور ته شوه پیقاره
لورې پوهیږم چې راغلی دې اجل دی

* * *

شپه شوله تیره چې سبا شو          دجلی مور و پلار رضا شو
مسید باور جان والي چې څه شیرین غزل دی

. . . . . . . . . . . . . . . . . . .

(۱) [illegible]

چمن خزان شو توری شول گلونه راځه راځه لا لیه لنه شول مزلونه

* * *

ستا خو موسم د ځوانۍ تیر شو، چې ځه دې یاد وو د ننه هیرشو

چې تا ورک به دې د پېغلو وربلونه

* * *

دیواله اوس به دې چپه کړم تا به له ستونې نه خفه کړم

تا نه پناه دې سینګار شوي وربلونه

* * *

د زماني اختیار دې نور کړه دا سپین ږیریان دې ولې تور کړه

زیاتیږي نو پرېږه دا عبث کارونه

* * *

زیره وهي چې زه ملک یم یا نې د دې حایداد مالک یم

نه دولتمن شوې نه ځلمي کوې حیلونه

* * *

دغه دنیا لکه مورچل دے غماز په کې پټ شوی غل دی

مرګی کوتوال دی ورانوي دا مرچلونه

* * *

راشه فقیر سید باوو جانه دعمر شمار واخله له مانه

په تا تیر شوي دي خوږ حلوښت کلونه

بس کړه ای طبیبه په وجود کې مې نقصان دے
بل مې په زړګي کې همیشه تاو د هجران دے

* * *

بس که ای طبیبه زه په خپل مرض پوهیږمه
ته دارو د سترګو راکوې ګټه چوریږمه
رنګ مې د فرقت دی چې جدا رانه جانان دے

* * *

لاړ شه ای طبیبه خدایږو زه د عشق مرض لرم
نه یې ما فرض کړه نه زه یې تا غرض لرم
داسې مریضان هم په دیدن سره درمان دے

* * *

وویلې طبیب سلام وعلیکم زه رخصت یمه
ماویل وعلیکم پرېږده ما چې په زحمت یمه
ځه یې مخ دې بنه شه نا علاج سید باوجان دی



## د دانش کتابخانې له خوا نور خپاره شوي آثار

| | |
|---|---|
| د شګې ګل | سید کمال د ننګرهار ولسي شاعر شعرونه |
| قلم او قیام | د لغمان ولسي شاعر عبدالرحمن علینګاري شعرونه |
| برګوډ | د ننګرهار ولسي شاعر توکل شعرونه |
| منګولې | د لغمان ولسي شاعر سید باوو جان شعرونه |
| سندریزې کیسې | د لغمان ولسي شاعر شیخ احمد خان شعرونه |
| مجنې سترګې | دلغمان ولسي شاعر بسم الله ګلکاریوال شعرونه |
| دیګرونه او شعرونه | طنز شعرونه - کاتب پاڅون |
| دولتي موټر | طنز داستانونه - کاتب پاڅون |
| پندونه او خوندونه | واړه طنزونه - کاتب پاڅون |
| د ښنجاره هټۍ | واړه طنزونه - کاتب پاڅون |
| سړي څنګه ښځه شوه | طنزونه - کاتب پاڅون |
| د ښار په سټډیوم کې | د مهاجرت طنزونه - کاتب پاڅون |
| دوه مخي کسان | طنز - میرزا علم حمیدي |
| وري څنګه لیوه شوه | طنز میرزا علم حمیدي |
| له ماښامه تر ماښامه | پیر محمد کاروان شعرونه |
| چنار خبرې کوي | پیر محمد کاروان شعرونه |
| څانګې څانګې ارغوان | نورالحبیب نثار شعرونه |
| خوته خبرې کوه | حسینه ګل شعرونه |
| د تاووس ښکه | د مصطفی سالک شعرونه |
| رجړومه | د ګوهر رحمن ګوهر شعرونه |
| ډیوټ | د ګوهر رحمن ګوهر شعرونه |
| د پښتو شعر هندسي جوړښت | د اسماعیل یون |
| افغانستان څنګه تباه شوه | جنرال رحمت الله ساپی |
| سرې لښکرې په فغانستان کې | د داود جنبش ژباړه |

دانش کتابخانه، ډهکي نعلبندي، قصه خواني بازار - پېښور